اما بعد فاعوذ بالله من الشیطٰن الرجیم

وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ـ صدیق الله العظیم ـ

ډیر ګرانو مشرانو او قدر مندو طالبانو !

الله تعالي دنیا او دنیا کښې چي سه هم دي دا الله تعالي د یو مقصد دپاره پیدا کړي دي . او هغه مقصد دا دي چي الله تعالي پیژندل او دا الله تعالي اطاعت کول او دا الله تعالي چي کوم قانون دي ،هغه ځان کښې راوستل او په دنیا کښې نافذ کول .

نو دا څلور خبري الله تعالي دا دي ټولي دنیا مقصدونه اوګرځول . ترڅو پوري چي امت مسلمه په دي څلورو مقصدونو باندي روان وو . نو امت مسلمه ترقي کوله نو کله چي دا مسلمانانو نه دا دي څلورو خبرو اهم والي ختم شو . او دادي څلورو مقصدونو دپاره ئي محنت پریښدو نو کم چي دا امت مسلمه حقیقي روح ؤو . نو هغه دوي نه وتل شروع شو . نو الله تعالي په بدلو طریقو سره دا امت دا راویښولو دپاره دا علماؤ کرامو او دا نیکو او دا پوښه خلقو توجه دي طرف ته کړله چي امت مسلمه په دي خبره پوښه شي چي دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم دا زماني او دا طریقو نه چي څومره لري والي کیګي نو امت هغي اومره دا وحي دا برکاتو نه محرومه کیګي او څومره چي امت دا هغي برکتونو نه شاته او روستو ځي نو امت هغه شان په مصیبتونو او په غټو غټو تکلیفونو کښې ډوبیګي .

نو اوس چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم آخري پیغمبر دي او دا امت آخري امت دي او دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم دین اسلام آخري دین دي . نو اوس چي کوم خلق دنیا ته راځي نو هغوي دا غلطو عقیدو او دا بدو کارونو او دا غیر شرعي طریقو نه بچ کول او دا هغوي اصلاح کول دا مسلمانانو او دا امت محمدي ذمه داري ده .

نو اوس ضرورت دادي خبري دي الحمدلله په دنیا کښې مسلمانان خه ډیر دي او طاقت ورسره هم ډیر دي، دا وسائیلو په اعتبار سره ،دا مال په اعتبار سره دا علم په اعتبار سره ، خه باوجود دادي ټولو طاقتونو مسلمان ذلیل دي او رسوا دي ،مظلومه دي دا وباګانو او دا لوګو تندو او دا ظلم شکار دي . او کو عام مسلمان دے او کو خاص مسلمان دے په دي وخت کښې دا سختو سره په مخ دي .

نو اوس دا دي خبري ضرورت دي چي قربانۍ دي ورکړي شي . او دین اسلام ته دي اوچت والي او دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم دین اسلام دي په زمکه کښې غالب شي . او بطور بطور قانون دي نافذ شي . نو اوس سه داسي کار او تدبیر او سه داسي طریقه اختیار شي چي دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم دین اسلام غالب شي په ټوله دنیا کښې او اوچت والي دي ورته میلو شي . نو ډیرو خلقو دا خپل وس مطابق کار کړي دي او اوس هم کوي.

نو څومره چي سترې او محنتونه کیګي او دي ،لکه درس وتدریس دا قضي او دا فتوي او دا جهاد او دعوتِ تبلیغ او تصوف و خانقا .نو دا دي ټولو دا مقصد دي چي دین اسلام دي غالب شي او دین اسلام ته دي اوچت والۍ میلوشي او په دنیا کښې چي په مسلمانانو باندي څومره مشکلات او سختۍ دي ،چي دا تري ختم

شي . نو دي مقصد دپاره ډيرو خلقو ډيرو پوښه او ډيرو عقل مندو او علماؤ کرامو حضراتو او ډيرو بزرګانو او مجاهدينو قربانئ ورکړي دي ، او په دنيا کښي په زمکه داسي حصه نشته چي په هغي باندي دي خلقو خپله وينه نوئ تويه کړي . دا دين اسلام دا اوچت والي دپاره ، او اوس هم داسي خلق موجود دي چي خپل مالونه خپل ځانونه او خپل اولاد قربانوئ ،او په ځنګلونو او بيابانونو کښي ده دين دپاره سفري کوي او دا الله تعالي دا دين دپاره ستړي او جنګونه کوي .

نو اوس داسي دا کم يو محنت ضرورت دي چي هم هغه شان يو امارت بيا جوړ شي کوم چي زمونږ نبي کريم صلي الله عليه وسلم خلفاؤ راشدين ته ابوبکر رضي الله عنه او صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين ته پريښي وؤ . او هغه شان روب او اوچت والي او دبدبه به بيا مسلمانانو ته الله تعالي ورکړي . نو اوس هر بنده په خپل وس پر دي او دا خپل وس مطابق دي کار شروع کړئ ، او دا دينِ اسلام دا نافذ کولو باره کښي ئي چي کوم سوچ وي ، دا قرآن و سنت په رنړا کښي هغه دي خپلو ملګرو ،رشته دارانو او خپلو مسلمانانو رونړو سره بيان کړئ او مخي ته دي ورته کيدي . او دا سوچ چي دي چي دا قرآن خلاف نه وي ، دا سنت خلاف نه وي ، دا اجماع خلاف نه وي ، دا قياس خلاف نه وي زمونږ دا اکابرو او دا علماؤ ديوبند دا مزاج خلاف نه دي او يو داسي محنت اوشي چي بغير دا يو فرقي نه او بغير دا يو تنظيم نه او بغير دا يو شناخت نه دا الله تعالي دا دين محنت اوشي او په يو داسي منظم اندازسره محنت اوشي چي دا الله تعالي دينِ اسلام دا انفرادي سطح نه اجتماعي سطح ته او اجتماعي سطح نه دا حاکميت سطح ته اورسي او په ټوله دنيا کښي بطور قانون نافذ شي . او الله تعالي انسان سره دا هغه دا سوچ مطابق معامله کوي . نو څومره چي ده يو بنده دا يو انسان سوچ دا الله تعالي دا دين دپاره اوچت وي لوئي وي دومره الله تعالي هغه سوچ له اوچت والئ او کاميابي ورکوي ، او هغه محنت او هغه سوچ الله تعالي مخکښي کوي ،ترقي ورکړئ .

نو کله چي هم يو محنت شروع شوي دي په مخکښي زمانه کښي که هغه دا دعوت تبليغ محنت وو اوکه دا مدرسو او که دا سياست آغاز وؤ نو هغه په ابتدا ،په شروع کښي به يو څو کسان وؤ  او په شاړه او دشته کښي به ناست وؤ . او يو څو طالب علمان نه وؤ نو چي بيا به هغوي مخلص وؤ . او دا سه ريا ،دا سه شهرت او دا سه دکهاوے او دا خودني او دا سه عهدے او دا سه نوم او دا مال دپاره نه وؤ او صرف دا الله تعالي دا رضا دپاره به ئي محنت کولو نو الله تعالي به ورله په دنيا کښي عزت ورکو او په آخرت کښي هم . نو اوس چي يو داسي محنت وي دا الله تعالي دا رضا دپاره وي چي باندي پکښي رد نه وي او په چا پسي پکښي بد نه وائي او چي کومي غلطئ وي دا هغي په صحيح طريقي سره  دا حل کولو کوشش کوي . او پخپله په ده کښي چي کومي وي نو چي دا هغي اصلاح هم مني  . نو الله تعالي داسي محنت نه ضائع کوي  نو اول کښي داسي نشي کيدي چي ټول خلق دي په يو ځل په يو مشن او په يو کار او په محنت راشي . که دعوت تبليغ وؤ نو هغه هم په اول کړ دا يو څو کسانو دا اخلاص نه شروع شوئ وؤ . نو الله تعالي هغه اوچت کړو او الله تعالي ورله وجود ورکو . او دغه شان دا مدرسو چي کومه سلسله او دا مدرسے چي کوم خدمت دي دا هم دا محمود استاد او دا محمود شاګرد دا اخلاص نه شروع شوي وؤ . دا انار دا ونئ لاندي استاذ او شاګرد ناست وؤ .او لله تعالي پکښي برکت واچوؤ او په ټوله دنيا کښي ئي خور کړو . نو

اعتبار چي وي خاتمه لره وي ، او اعتبار عمل لره وي او اعتبار الله تعالي ارادي او اخلاص لره ورکوي . او څومره چي يو کار يو محنت کې اخلاص وي او څومره چي يو اراده لوئي وي نو الله رب العزت هغه شان هغي له وجود ورکوي . نو خبره داده چي الله تعالي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته علم ورکړي وؤ . او نبي کريم صلي الله عليه وسلم هغه علم صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ورکړي وؤ . او هغه علم مونږ ته دا صحابه کرامو رضي الله عنهم په ذريعه رارسيدلي دي ، او تر قيامته پوري چي سه به هم کيږي هغه نبي کريم صلي الله عليه وسلم صحابه کرامو رضي الله عنهم ته بيان کړي دي ، او هغه نبي کريم صلي الله عليه وسلم په پنځه ادوارو کښي تقسيم کړي دي . نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائي چي حديث شريف دے

عَن النُّعْمَان بن بشير عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَكُونَ [ص:١٤٧٩] ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ» ثُمَّ سَكَتَ قَالَ حَبِيبٌ: فَلَمَّا قَامَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ كَتَبْتُ إِلَيْهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ أُذَكِّرُهُ إِيَّاهُ وَقُلْتُ: أَرْجُو أَنْ تَكُونَ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ بَعْدَ الْمُلْكِ الْعَاضِّ وَالْجَبْرِيَّةِ فَسُرَّ بِهِ وَأَعْجَبَهُ يَعْنِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. رَوَاهُ أَحْمد وَالْبَيْهَقِيّ فِي «دَلَائِل النُّبُوَّة»
(مشكاة المصابيح (٣/ ١٤٧٨)

چي تاسو کښي به نبوت وي ترسو چي الله تعالي او غواړي نو کله چي الله اوغواړي هغه نبوت به ختم شي او نبي کريم صلي الله عليه وسلم به وفات شي . او بيا (ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى) بيا فرمائي چي خلافت به وي دا نبوت پشان ترسو چي الله تعالي اوغواړي چي کله الله نه غواړي نو هغه خلافت به هم بيا ختم کړي . او دا ابوبکر دا عمر دا عثمان او دا علي رضي الله عنهم دا زماني دا وخت خلافت علي منهاج النبوت وؤ . نو هغه ختم شو .او بيا ئي اوفرمائيل چي (ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى) بيا نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي بيا به ملک عاض وي يعني موروثي حکومتونه به وي پلار به ئي وي بيا به دا هغه نه پس به ئي ځوي وي او دا هغه نه پس به ئي نوسي وي په دي طريقه به ميراثي حکومتونه وي . يعني دا الله تعالي احکامات به پکښي وي ،سنت طريقي به پکښي وي نور حدود قصاص او دا نوري خبري به پکښي وي خو دا خلافت چي کومه طريقه ده يعني شورائي نظام په کمه طريقه چي خلافت ولاړ وي هغه شورائي نظام به تري ختم شي او موروثي نظام به پکښي راشي . او بنو اميه ،بنو عباس او سلطنت عثمانيه هغه هم داسي حکومتونه وؤ ، يعني دا الله تعالي احکامات به پکښي وؤ خو دا خکومت دا ټاکليتوب دا حکومت دا انتخاب چي کمه طريقه ئي دا شورا هغه شورا به پکښي نه وه . بيا نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللَّهُ تَعَالَى) بيا به دي نه پس ملک جبري وي تر څو چي الله غواړي . نو ملک جبري به وي چي کله بيا الله تعالي اوغواړي نو ملک جبري به ختم کړي . نو بيا نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل . (ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ) چي بيا په پنځم ځل به بيا خلافت وي دا نبوت په طرز به راځي . دا صحيح حديث دي دا مشکوه شريف ، مسند احمد ، او مسند ابوداؤد .

چي ړومبي وخت دور نبوت ، دويم دور دورخلافت ،دريم دور دورعاض موروثي څلورم دور دورِ جبري  او پنځم دور دورِخلافت په طرز دا نبوت .

نبي كريم صلي الله عليه وسلم بل حديث کښي فرمائي

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنَعَتِ الْعِرَاقُ دِرْهَمَهَا وَقَفِيزَهَا، وَمَنَعَتِ الشَّأْمُ مُدْيَهَا وَدِينَارَهَا، وَمَنَعَتْ مِصْرُ إِرْدَبَّهَا وَدِينَارَهَا، وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ، وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ، وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ» صحيح مسلم (٤/ ٢٢٢٠)

چي (وَعُدْتُمْ مِنْ حَيْثُ بَدَأْتُمْ) چي تاسو به دوباره هغه حالت نه راځي چي په كوم حالت اول وے .

چي دوباره به حالت راځي چي اول کښي هم يو پيغمبر وو ( نبي كريم صلي الله عليه وسلم ) او آخر کښي به هم يو پيغمبر وي خو بحيثيتِ امتي  ( عيسي عليه السلام )

نو هغه وخت به بيا راځي . په دي حديث کښي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل او پيشنګوئي هم پکښي اوکړه .

دا نبي كريم صلي الله عليه وسلم دورِنبوت ورپسي دا خلفاؤ راشدينو خلافت ورپسي چي كوم دي موروثي حكومتونه بنو اميه ، بنوعباس ، سلطنت عثمانيه او ١٩٢۴ کښي سلطنت عثمانيه ختم شو ورپسي ملکِ جبري او دا ١٩٢۴ نه پس ملکِ جبري شروع شوي دي .

حديث کښي راځي چي خلق به حرام په بدلو طريقو او په بدلو نومونو استعمالوي ئي به حرام خه په بدلو خپلو او بهانو سره به خلق استعمالوي .

دغه رنګ فحاشي او عرياني او قِسم قِسم سختئ او مصيبتونه او تکليفونه په امت کښي به راشي . لکه بل حديث کښي راځي . ( لاتن قذن عر الاسلام عروه عروه ) چي دا دينِ اسلام به يو يو هتهکړي کټ کيګي . او ړومبئ هتهکړي دا دينِ اسلام چي دا هغه کټ شي نو اول به دا دنيا نه دا الله تعالي دين بطور قانون ختم شي . لکه دا خلافت ختميدو سره دا الله دين بطور قانون دا دنيا ني ختم شو . او (و آخره الصلوه) او په آخر کښي به مونږ ختم شو . لکه په (فضائل اعمال ) کښي حضرت شيخ صاحب ليکي چي خلق به ټول په جماعت کښي مونځ کوي خو په ټول جماعت کښي به يو کس تن هم خشوع و خضوع والا نه وي . او يو کس به شپيته کاله (۶۰ سال) مونځ اوکي خو مونځ به ئي ګډوډ وي . نو دادي خبري مطلب دادي چي الله تعالي دي امت له دوباره اوچتيدل مقرر کړي دي چي دوباره به بيا امت را اوچتيګي او هغه مقام ته به رسي چي په کم حال نبي كريم صلي الله عليه وسلم پريښي وؤ. يعني دا ابوبکر رضي الله عنه دا خلفاؤ راشدينو پشان به بيا الله خلافت راولي . نو څنګه چي هغي کښي نبي كريم صلي الله عليه وسلم تشريف راوړي وؤ . نو هغه شان به په دي کښي آخر کښي بي حضرت عيسی عليه السلام تشريف راوړي بطور يو امتي محمدي .

او نبي كريم صلي الله عليه وسلم ډير په فخر سره فرمائي چي ( کيف انتم اذ نزل فيکم عيسی ابن مريم و امامکم منکم ) چي څومره دا خوشحالي مقام دي چي ستاسو يو کس هغه به امام وي او عيسی عليه السلام به مقتدي وي . او بله خبره دا ده چي راروان دور دا خلافت علي منهاج النبوت دور دي . يعني مطلب دادي چي په ټوله دنيا به دا الله تعالي پيغمبر حضرت عيسی عليه السلام به دا نبي كريم صلي الله عليه

وسلم دا امتي په طور راځي او په دنیا به خلافت علي منهاج النبوت کوي . نو دا عیسی علیه السلام نه مخکښي به دجال راځي . او دا دجال نه مخکښي به امام مهدي علیه الرضوان راځي او دا داسي خبري دي چي دا زمونږ او ستاسو متواتر عقیده ده چي دا دي نه انکار او مخ اړول نشته . نو دا خبري مقصد دادي چي په دي خبره باندي مونږ پوهه شو . او په دي زیري باندي پوهه شو . کوم چي مونږ ته راغلي دي . دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم په ذریعه او بل مقصد دا دي چي دا هر کار دپاره سه اصول وي . داسي نه کیګي چي یو کار دي پخپله او سمدستي اوشي . دا دنیا هر کار دا الله تعالي په اراده کیګي او الله ئي کوي . خو الله تعالي هر یو کار دا یو قانون یو قاعدي مطابق کوي . نو الله تعالي  خو زمکه او آسمانونو سمدستي اچانک پیدا کولي شو . زکه چي الله تعالي خو ( کن فیکون ) ذات دي . او په خپل تدبیر ئي او په خپل مصلحت ئي زمکه او آسمانونه په ووۀ ورځو(۷دن) کښي جوړ کړل . دادي خبري په وجه چي خلق په دي خبره پوهه شي چي الله تعالي کومه دنیا جوړه کړي ده نو دا دنیا دا یو قانون او قاعدي مطابق ده . بلکه دیکښي چي څومره انسانان دي سا هر یو انسان دپاره به اوبه څومره وي او دا هغه رزق به څومره وي او دا هغه دا اوسیدو ځائې به کوم یو وي . او الله تعالي یو قلم ته ئي حکم اوکړو چي دا هر څه اولیکه . او ټول تقدیرونه ئي اولیکل . نو په هغي زمونږ ایمان دي  چي سه هم کیګي دا زمونږ دا هغه تقدیر دا لیکلو په وجه کیګي . ( والقدر خیره و شره من الله تعالي ) نو الله تعالي هر څه کوي خو باوجود دادي  الله تعالي پیغمبران رالیګل او دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه وړاندي یو لاکه څلورویشت زره (۱۲۴۰۰۰ )پیغمبران رالیګلي دي .او ټول انسانان الله دنیا ته په یو خاص شکل راوستل او ورته ئي ارشاد اوکړو چي ( الست بربکم ) چي آیا زه ستاسو رب نه یم نو دي ټولو انسانانو اووئیل چي ( قالوا بلي ) ته زمونګ رب ئي . او دادي نه پس بیا هم الله انبیا کرام  راولیګل او کوم پیغمبر به ئي چي رالیګو نو هغه له به ئي دا بل پیغمبر زیري ورکوۀ . او ټول انبیا کرام علیه السلام ئي راټول کړل . او ټولو انبیا کرامو علیهم السلام نه ئي وعده واغسته  چي               (آیت واذ اخذ الله میثاق .................. قالوا اقررنا ) نو الله تعالي دا هر یو پیغمبر نه به وعده اغسته چي ستا نه پس یا تاسره یا تاپسي چي کوم پیغمبر راځي نو دا هغه به مدد کئ او دا هغه به ملاتړ جوړیګي او دا هغه به تصدیق کئ . نو الله تعالي داسي ولي کوي دا دا الله تعالي قانون او قاعده ده چي یو کار کوي نو هغه کار پرله پسي کئ په رو رو او تدبیر سره ، او په مزه په مزه کوي . څنګه چي الله تعالي شراب حرامول نو سمدستي ئي حرام نه کړل . بلکه رو رو پرله پسي ئي حکم جاري کړو او حرم ئي کړل ( انما الخمر والمیسر ........... رجس من الشیطن ) نه دا حکم سمدستي نه وۀ.

( یسئلونک عن الخمر والمیسر کل فیهما ............... لناس ) او دا هغه نه پس ( یایها الذین امنوا لا تقربوا الصلوه وانتم سکري )

او بیا ئي دا مونځ نه پس هم حرام کړل . نو دا الله تعالي خپل قانون دي هر کار دا خپل حکمت مطابق کوي .

او څومره چي کورونه هم کوي نو هغه دا اسبابو ما تحت کوي او څومره چي کارونه کیګي په دنیا کښي هغه دا ټول دا اسبابو ما تحت کیګي او دا اسبابو په ذریعه انجام ته رسي . لکه څنګه چي دا نبي کریم صلي الله

عليه تلل الله مدينه ته ليکلي  وؤ ، چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به مدينه ته ځي او په تورات کښي هم دا وعده وه چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم  به مديني ته ځي . په دي وجه يهوديانو ته دري سوه کاله (۳۰۰) مخکښي پته وه چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به مديني ته راځي . نو ځکه هغه يهوديان مخکښي مديني ته راغلي وؤ . او پته وه ورته ځائے ورته معلوم وؤ او زمانه هم او پيژندو ئي هم نبي کريم صلي الله عليه وسلم او باوجود دا دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم او صحابه کرام رضي الله عنهم باندي دوه پيري حبشي ته هجرت اوکړو . او بيا چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم طائف ته لاړو او هر کال په نبي کريم صلي الله عليه وسلم باندي دا بعثت نه بعد دا نبوت نه پس ديارلس حج راغلي وؤ . او هر کال دا حج نه پس به دري مياشتي،څلور مياشتي دا حج موسم وؤ . او نبي کريم صلي الله عليه وسلم به هر ځائے ځائے ته او هري يوي خيمي ته به تلو . او هغوي ته به ئي وئيل چي زه دا الله تعالي آخري پيغمبر يم .
او تاسو ماله ځائے راکړي څه تاسو ته دا الله خبره کوم څومره ګران کار دي چي دا دواړو جهانو سردار امام الانبيا يو خيمے ته ورځي او دروازه ډبوئ چي ماله ماسره يوځي شي او زما خبره واوري . او ما خپلو علاقو ته بوځي چي خلقو ته دا الله تعالي توحيد او رسالت او دا مرګ نه پس ورته جوندون بيان کړم . ديارلس کاله به هر يوي خميمي ته تلو او دا خبره به ئي ورته کوله . په فضائل اعمال کښي حضرت شيخ صاحب ليکي چي يو کس روان دي خلقو ته دا الله رب العزت وحدانيت بيانوي او شاته ورپسي يو کس روان دي وائي اے خلقو چي دا زما رواره دي او دي دروغ وائي . څومره ګران کار دي . او رب العلمين ته پته وه چي دي به ځي مکي نه مديني ته او انصار چي کوم دي صحابه کرام رضي الله عنهم دا مديني خلق هغوي جنګونه کړي وؤ . يو سل شل کاله (۱۲۰ سال ) مخکښي.
عائشه رضي الله عنها فرمائي کتاب المناقب الانصار کښي . بخاري شريف کښي دا عائشه رضي الله عنها نه روايت دي چي دا نبي کريم صلي الله عليه وسلم  دا راتلو نه مخکښي يو سل شل کاله (۱۲۰) مخکښي انصارو يو بل سره به جنګيدل اؤس او خزرج  قبيلي به يو بل سره جنګيدي . يهوديانو به يوله هم پيسے ورکولي او بلي قبيلي به هم پيسے ورکولئ او يو بل سره به ئي جنګول . تر دي چي غټ غټ مشران او بادشاهان تري ختم شو .
نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته حالات الله تکويني طور سره برابرول  . او يو څو ۸۳ يا ۸۴ منافقين پاتي شو . او نور ټول ختم شو .
عباده بن ثابت رضي الله عنه ، سعد بن معاذ رضي الله عنه دا حضرات راغلي وو حج له خيمه کښي ناست وؤ . نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته تشريف فرما شو او ورغلل دغي خيمي ته . نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورسره خبره شروع کړه . نو هغي اووئيل چي دا خو هغه پيغمبر دي چي يهوديان وائي چي مونږ به دوي سره مرګري کيګو او دا عرب به داسي ختموؤ لکه چي څنګه عاد او ارم الله تعالي ختم کړي دي . ارم هم عرب وؤ .( ارم ذات العماد )هغوي  اووي چي مونږ پري مخکښي شو . توکل ئي اوکړو نو بس چي توکل ئي اوکړو نو الله رب العزت ورله توفيق ورکړو نو يو کال دولس (۱۲) او بل کال دوه اويا (۷۲) او په بل کال حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن مکتوم رضي الله عنه ئي مدينے ته اوليکل

نو دا هغوي په لاس باندي ټوله مدینه مسلمانه شوه . او نبي کریم صلي الله علیه وسلم بیا لاړو نور کار بیا روان شو . نو الله تعالي ته پته وه چي زه به نبي علیه السلام مدیني ته لیګم خو دا الله تعالي دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم هغه اداګانئ خوښي وي . چي طائف کښي روان دي او خلق ئي په کانړو اولي او پښړي مبارکي ئي دا وینو نه ډکي شوي نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم یو طرف ته ودریدو نو بس دعا ئي شروع کړه ( اللهم اشکر .........)

څومره خطرناکه دعا کوي نو دا الله تعالي رحمت په جوش کښي راغي په فضائل اعمال کښي حضرت شیخ صاحب لیکي چي دي دوران کښي دا غرونو ملائکه فرشته نازل شوه . یعني دا وائي نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته چي که ستاسو خوښه وي نو څه به دا دواړه غرونه رایوځي کړم . او دا قوم به پکښي اومګم نو نبي علیه السلام ورته اوفرمائیل چي نه .

نو مطلب دادي چي الله په نبي کریم صلي الله علیه وسلم مدیني ته تلل فرض کړي وؤ . خو دا اسبابو ما تحت نو په دي لارو باندي چي کمدي نبي علیه السلام رالو . او مدیني ته چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم تشریف یوړو نو داسي جهاد شروع نه شو یکدم هغي دپاره الله تعالي یو ترتیب جوړ کړو . دا هغه ترتیب مطابق بیا نبي کریم صلي الله علیه وسلم جهاد اوکو . نو مطلب دادي چي اوس الله تعالي دا وعده کړي ده چي نبوت او دا نبوت نه پس بیا خلافت او خلافت نه پس بیا ملک عاض او بیا ملک عاض نه پس ملک جبري او بیا چي کمدي خلافت علي منهاج النبوت .

نو نبوت ختم شوي دي دا نبي علیه السلام زمانه ختمه شوي ده دا خلفاؤ راشدینو خلافت دور هم تلے دے ختم شوي دي .ملک عاض یعني بنو امیه ،بنو عباس ،سلطنت عثمانیه دا حکومتونه ختم شوي دي . اوس ملک جبري دور روان دي شروع دي او دي ملک جبري نه پس الله تعالي دا خلافت علي منهاج النبوت وعده کړي ده .

څنګه چي الله تعالي دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم په مکه کښي فرض کړي وؤ . چي نبي علیه السلام به مکه کښي پیدا کیګي . او مدیني ته به نبي علیه السلام هجرت کوي . او مدیني ته سمدستي اچانک رانغلو . یو باقاعده قدم په قدم رو رو سره الله تعالي نبي کریم صلي الله علیه وسلم مدیني ته راوستو .

نو دغه شان الله خو دا خلافت وعده کړي ده خو الله به څوک هغي له سبب جوړوي کنه ؟ نو اما مطلب دا دي چي دا دنیا دارالاسباب ده . دارالاسباب کښي چي څنګه نبي کریم صلي الله علیه وسلم دا اسبابو ما تحت وؤ دا هغوي هجرت دا اسبابو ما تحت وو یعني دوه اوښان ئي ځانله اغستل په پیسو باندي دا اسبابو ما تحت او ځانله رهبر کتل چي ماته لار اوښائي دا تلو دپاره دا اسبابو ماتحت او بیا په غار کښي پناه اغستل دا اسبابو ماتحت او هغه غار ته دا آسما رضي الله عنها روزانه تلل دا اسبابو ماتحت او بیا عبدالله بن عامر دا ابوبکر رضي الله عنه غلام هغه روزانه دا ګډو ،چیلو سره راتلل چي دا آسما رضي الله عنها ده پخو هغه نخي ختمي شي دا اسبابو ما تحت او الله رب العزت عنکبوت جولا راویستل چي په غار باندي جاله جوړه کړي دا اسبابو ما تحت دا هر څه الله تعالي دا اسبابو ما تحت کړي وؤ . نو څنګه چي دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم یو عظیم پیغمبر وؤ دا هغه دپاره هر څه دا اسبابو ما تحت کیګئ .

دا نبي عليه السلام نبوت دا اسبابو ما تحت راځي دا خلفاؤ راشدينو خلافت دا اسبابو ما تحت راغلو سمدستي اونه شو دا اسبابو ما تحت . نو دا اوس چي کوم خلافت راځي نو دا به هم دا اسبابو ما تحت وي نو اوس هغه اسباب سه دي .

نو مطلب دادي چي هغه اسباب معلوم کړو دا هغي دپاره بطور تمهيد يو خبره ياد ساتل ډير ضروري دي .
الله تعالي يو کار دا فاسق او دا فاجر سړي نه هم دا دين کار اغستي شي .آيت
الله تعالي دا فاسق او دا فاجر سړي نه هم دا دين کار اغستي شي خو ډير کارونه داسي اوشي چي دا دين کارونه اوشي خو دغه سړي هغه بنده پخپله دوزخ جهنم ته لاړ شي او دا دين هغه کار روان وي . الله دي نه کړي چي الله تعالي مونږ سره چرته داسي کار اونکړي . الله دي زمونږ په حال رحم اوکړي .

نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائي حديث شريف کښي دي چي کله کافران روم سره معرکه وي نو دا امام مهدي عليه الرضوان لشکر به دري ډلي وي . يو قسم خلق به کامياب شي فاتحانه به شي او بل قسم خلق به شهيدان شي او بل قسم ډله به مرتد شي او دا کوم خلق چي مرتد شي کافران شي نو دادوي توبه به نه قبليګي دا امام مهدي عليه الرضوان په ملګرو کښي .

نو اسبابو کښي ړومبي نيک عمل دي او په نيک عمل کښي ړومبي دا ظاهري شريعت مکمل پابندي ده . دا صغيره او کبيره ګناه نه مکمل زان ساتل دي . او دا فرضو اهتمام په صف اول کښي او دا نوافل ادا کول ،اشراق ،چاشت ،اوابين او دا تهجدو پابندي کول او په ورځ کښي يو وخت داسي وي چي هغي کښي صرف دا الله تعالي ياد وي بل هيڅ ياد نه وي .

او چي دا خيال وي چي ما الله تعالي ويني او داسي وي چي په زړه کښي صرف دا الله تعالي ياد وي . او خامخا تهجد کوي نو دا کس دا الله
امام مهدي عليه الرضوان دا لښکر والا په اوصافو برابر دي .

نو اوس يو کس وائي چي زه به دوره حديث کوم نو چي دي اولي ،ثانيه او نوري درجئ ني وائي نو دي دوره حديث ته نشي تلے . اول به دي اولي وائي بيا به ثانيه او بيا نوري درجئ به وائي نو بيا به دوره حديث ته ځي .

نو الله تعالي خو هر څه کوي خو الله تعالي هر کار دا يوي قاعدي او دا قانون مطابق کوي الله تعالي دا هر څه دپاره يو پيمانه مقرر کړي ده . ( ولن تجد لسنت الله تبديلا ولن تجد لسنت الله تحويلا )
داسي نشي کيدي چي يو کس واده نه کړي او دا هغه دي اولاد بچي وي يا اوشي ، نکاح به کوي واده به کوي نو بيا به الله تعالي بچي ورکوي او الله نه به غواړي .

نو داسي نشي کيدي چي ده يو کس باطن دي صفا نه وي او هغه دي دا امام مهدي عليه الرضوان ملګري جوړ شي داسي نشي کيدي . او خبري داده چي دا ده عمل دا امام مهدي عليه الرضوان دا لښکر والا پشان وي . يعني څنګه چي تبليغ والا وائي چي دا الله تعالي ني علاوه يو کار هم نه کيګي . او دا الله نه علاوه ئي دا هيڅ شئ نه رعب او يره ئي هم په زړه کښي نه وي او دا الله تعالي ني علاوه ئي بل چا سره تعلق نه وي او طمع او يقين ئي صرف په يو الله تعالي وي . او دا دي دپاره نوافل کوي او دعاګاني هم کوي . نو الله بيا

کاميابي او اوچت والي ورکوي لکه چي يو کس حفظ کوي ، علم هم ، سبق هم وائي او امتحان ته تياري هم کوي او دا استاذانو خبره هم مني او دعاګاني هم کوي . نو صرف په دعاګانو باندي نه کيګي دا هر څه په محنت باندي کيګي او دعاګاني ورله تيزي راولي . او بله خبره داده چي بطور تمهيد چي کوم کس کوم کار کوي او دي چي کوم کار له روان دي خو دي هغه کار کوي لکه څنګه چي يو کس نحو زده کوي نو دي به نحو وائي نحو به ليکي نحو به اوروي او اجرا به پکښي کوي ،خو معني دا شوه چي يو کس له ديره خکلي نحو ورځي عبارت خه خکلي لولي وائي ، دا نحوي په عبارت خه پوهيګي خو اجرا ئي نه ئي کړي نو دي چلي دي شي نه . يا صرفو والا ګردان خکلي وائي ټول اقسام هم پيژنئ خو قانون نه شي لګولي او پيژنئ ئي خو لګولي نه شي . نو دا دغي نحوي ، صرفو مطابق اعراب نه شي وئيلي نو ده له دي نحوي او صرفو فائده اوکړه ؟ نه . زکه چي دا کوم کار دپاره ئي علم زده کړي وؤ هغه کار ئي پري اونکړو . نو دغه شان يو کس خو دا امام مهدي لښکر له روان دي خو تطبيق نشي کولي . هغه کار نه کوي .لکه مثلا يو کس تبليغ والا وائي بهائي چي مشوره دا کوم کار دپاره کيګي هغه دا هغي کار مقصد دي . نو دا امام مهدي عليه الرضوان دا لښکر دپاره بنيادي کار دا دي چي دعوت ورکوي چي دا کمي خبري دي دا ځان کښي راولي نو دا هغي دي دعوت ورکوي نو دعوت سره به دا ده فائده کيګي چي اول دي پخپله تياري اوکړي . او دته به لاري هم اواريګي او روکاوټونه به ورته ختميګي او الله به ئي مدد او نصرت کوي نو کو اوس يو کس ډير تيار دي خو روکاوټونه دي ورته نو دي تيار دي ؟ نه .

ډير تکړه کسان به وؤ تاسو سره کلاس کښي خو سبق ئي پريښودو وي کور کښي ورته ماحول ټهيک نه وؤ يا ورته ماحول برابر نه وؤ يا نور عذرونه ورسره اولګيدل نو بس شيطان خو ورسره وؤ . او شيطان سره خو ډير غټ علم دي بس شيطان ورته دا يوي خبري نه مسئله جوړه کړي او بس دا علم نه ئي پاتي کړي .

نو دغه شان ډير کسان به وي هغه به امام مهدي سره تيار وي خو هغه به چي کوم دي تلي نشي پاتي به شي زکه به پاتي وي چي هغه به تطبيق نه وي کړي ، دعوت به ئي نه وي چلولئ ځان ته به ئي روکاوټونه نه وي ختم کړي نو بس پاتي به شي .

او بله خبري دا ده چي دا الله تعالي په وعدو او په وعيدونو به ئي يقين او بهروسه وي . کو يو کس هغه ټولي خبري کوي او دغه خبري دا يقين په طور ني کوي بس صرف زباني جمع خرچ کوي او يقين ئي پري نشته . اوس يو کس وائي چي زما يقين شته نو اوس دا يقين په زړه کښي راسخ دي او کو نه ؟ نو دادي دليل سه دي ؟ دادي دليل دادي چي دي به دا هغي مطابق عمل کوي . څنګه چي مونږ کلمه وايو چي ( لااله الا الله محمد رسول الله ) نو دا ده عمل دا کلمي مطابق دي ، دا کلمي دا مقتضي مطابق دي نو دا دي مطلب سه شو چي دادي کلمي يقين دا ده په زړه کښي شته .او که دا ده عمل دا کلمي دا مقتضي مطابق نه دي . نو دا دي مطلب داشو چي دا کلمي يقين دا ده په زړه کښي راسخ نه دي يعني دي خو هسي وائي نور خالي دي .

نو دغه شان يو کس دا امام مهدي عليه الرضوان دپاره هر څه بيانوي په دعوت کښي خو زړه کښي وائي چي پته نه لګي چي پلانکي اووائي نو کله به کيګي . نو دنيا خو دا پلانکي دا امر محتاجه نه ده . دا الله تعالي

دا امر محتاجه ده او الله خپل پیغمبر صلي الله علیه وسلم ته ټولي نشاني خودلي دي . نو مثلا دا نښي نشاني پوره دي او دا خبره ده چي یقین ئي وي خو چي یقین ئي دا شریعت دا اصولو مطابق وي چي داسي نه وي چي دا پلانکي کس مهدي دي . او په پلانکئ ورځ به راځي نو دا کار حرام دي . کس متعین کول او وخت متعین کول حرام دي . قرآن کښي الله تعالي وولس (۱۷) آیتونه په دي باندي نازل کړي دي . خو تیاري کول پکار دي ( انهم یرونه بعیدا و نراه قریبا )

نو قریب ده کله الله تعالي ته پته ده ، قریب دي چي امتحان را روان دي لا ورځي شته ، نن چوده تاریخ دي لا سبق مه وایه لا مه وایه داسي طالبان وائي کنه پخپله ځان له وخت ورکوي ، سبا به شروع کړم بله ورځ به شروع کړم په دي کښي وخت تیر شئ او عقلمند او پوښه طالب علم سه کوي دي لا سه ماهي امتحان ختم نه وي دي زان له لګ لګ پټ سبق زوتول شروع کړي . نو دغه شان امام مهدي علیه الرضوان په باب کښي عقلمند انسان څوک دي چي دي تیاري شروع کړي که لري وي او که نزدي وي . وائي چي زما هغي سره څه کار نشته دا خو دا الله تعالي کار دي دا غیبو علم او پته لګیدل دا خو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته هم پته نه وه . چي قیامت به کله راځي او دا قیامت علامات به کله پوره کیګي . نو دا هغي چاته علم نشته .

اسبابو کښي ړومبي علامت هغه علامات زمانیه دي ، چي علم زده شي تر څو چي یو کس یو بنده انسان په یو کار باندي پوښه نه وي نو هغه کار هغه پخپله نشي کولي نه ئي چاته بیان کولي شي . خاص کر داسي یو محنت چي هغه مخکښي نه دي شو ي، چي په تاریخ کښي هم چا نه وي کړي .

نو اوس مدرسه ده نو ډیري مدرسئ دي نو دا هغي نه خلق طریقه زده کړي . خو دا دي باب طریقه نشته .لکه چي څومره دادین کارونه دي دا هغي ټولو نه مخکښي یو طریقه شته یو لار شته . خو دا امام مهدي علیه الرضوان دا باب طریقه شتي ؟ چاته معلومه ده ؟ چرته کتاب کښي شتي ؟ نه نشته . نو ضرورت دا دي خبري دي چي کوم کس یو کار کوي دا هغي دپاره بطور تمهید دا خبري ځان کښي راولي او په دي ځان پوښه کړي . لکه اوس یو کار به یو کس هله کوي چي پوښه ئي پري . اوس یو کار باندي سري پوښه نه دي نه دا هغي په مقصد پوښه دي نه دا هغي دا طریقي نه خبر دے نه دا هغي دا اصولو نه خبر دے نو بیا هغه کار هغه کولي شي نه نه کیګي .

نو چي دا امام مهدي علیه الرضوان دا باب دپاره کوم بنیادي علم دي او بنیادي کار دي هغه زده کړو او په علم کښي ړومبي شئ هغه علامات زمانیه دي چي علامات زمانیه مونږ ته معلوم وي ، چي امام مهدي صاحب به په کومه زمانه کښي راځي ، چي دا هغي زماني مونږ ته پته وي او بیا علامات مکانیه چي دا مهدي علیه الرضوان به کوم مکان سره تعلق وي چي دا هغه مکان مونږ ته پته وي . او بیا علامات شرعیه چي دا امام مهدي علیه الرضوان دپاره شرعي طریقه څه ده چي دا شریعت په رڼرا ئي مونږ ته معلومه وي .

او بیا علامات شخصیه چي مونږ ته دا امام مهدي علیه الرضوان شخصي اعمال معلوم وي او دا امام مهدي علیه الرضوان نه مخکښي به کوم کوم شخصیات راځي چي دا قرآن و سنت په رڼرا کښي چي دا هغوي سه دلائل دي چي هغه مونږ ته معلوم وي .

نو دا دي ټولي خبري خلاصه دا ده چي رومبني دا چي دا امام مهدي عليه الرضوان نه مخکښي به زمانه څنګه دي ، چونکه وخت خو متعين نه دي ، کس متعين نه دي نو اوس به کس متعين کوؤ په سه علاماتو شخصيه باندي . مثلا دا قاري صاحب دي چي دنګ دي غټي غټي سترګي ئي دي وسيعه سينه ئي ده ، دا خنده پيشانئ والا دي او خوش مزاجه دي ،رنګ ئي خائسته دي . مثلا يو بل وزير اعظم دي ،ګيره ئي ده ، دا تهانوي صاحب پشان ټوپي ئي اچولي ده ، دومره ئي عمر دي داسي ځائے کښي پيدا دي ، دا علاقِ ئي دا نوم دي ، داسي داسي صفات پکښي دي ، دا هر څه اوکتلي شو او بيا ئي دا ملګرو نه هم تپوس اوکو ورله ټولو ملګرو ئي اووئيل چي داسي دي ، او دا کور ئي ورله هم معلومات اوکړل او هر څۀ ئي ورله اوکتل نو بيا دي او دي او بيا چي کوم دي وزيراعظم ئي کړو . نو دغه شان چي ته کس متعين کوي نو تعين نشته نو تعين خو به دا هغي علاماتو په ذريعه کوي .

اوس علامات کوم دي نو دا هغي زده کول . اوس به په کومه زمانه کښي راځي دا خو په هره زمانه کښي خلق وائي چي فلانکي کښي علامات دي نو چي فلانکي کښي علامات دي نو ورسره دا هغي زماني علامات هم زده کړو او يادول ضروري خبره ده . او دا خو هر ځائے کښي کيدي شي او هغه فلانکئ ځائے کښي هم داسي دي او هر ځائے کښي دي او هر ځائے کښي شته دا خو بيا شل امامان شو مهدي خو ډير شو نه ، مکان ئي معلوم شو او دا هغه هر څۀ معلوم شو او په شرعي طريقه کار او نه شو نو بيا شو نه . شرعي طريقي مطابق کار کول ضروري دي ، او بله خبره دا چي ورپسي شخصيات او تاثرات چي ورباندي هم پوهيګو .

ړومبني خبره دا چي دا علاماتو زمانو باره کښي ړومبني خبره داده چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم باندي الله تعالي سوره اسرا او سوره بني اسرائيل نازل کړل . په دوره اسرا او په سوره بني اسرائيل کښي الله تعالي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته دا بني اسرائيلو سياسي تاريخ په پنځو آيتونو کښي بيان کړو . چي آئنده راتلونکي زمانه سياسي حالات دا دوي سه وي . دا بني اسرائيل آيت نمبر ۴ ،۵ ،۶ ،۷ ،۸ او آيت نمبر ۱۰۳ او ۱۰۴

او په دي آيتونو کښي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته دا بني اسرائيلو ټول حالات بيان کړل چي کوم په بني اسرائيلو باندي آئينده وخت کښي راتلونکي دي . الله تعالي ارشاد کوي په قرآن کښي .

({ وَقَضَيْنَا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا (٤) فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ أُولَاهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَنَا أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ وَكَانَ وَعْدًا مَفْعُولًا (٥) ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَاكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا (٦) إِنْ أَحْسَنْتُمْ أَحْسَنْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوءُوا وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيرًا (٧) } [الإسراء: ٤ - ٧] په دي ټولو آيتونو کښي .

{ وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا (١٠٤) } [الإسراء: ١٠٤]

په دي آيتونو کښي الله تعالي بني اسرائيلو ته فرمائي او دا ورته وائي چي الله تعالي تاسو له دوه ډيري موقع درکړي وه چي تاسو له به ئي طاقت درکړو تاسو له به ئي په زمکه کښي بادشاهي درکړه او فوجونه ئي درکړل . اقتصاد به ئي درله څۀ کوؤ او اولاد به ئي درله زيات کوؤ او کسان به ئي درله زيات کړل . نو تاسو

به دا هغي نه غلط مطلب واغستو او فساد به مو شروع کوؤ په زمکه کښي نو دواړو فائدو نه پس الله رب العلمين تاسو باندي خپل بندګان مسلط کړل (فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ) او هغه ستاسو په ښارونو کښي درننوتل او خه ئي اوډبولئ او انجام ئي درسره اوکړو . نو آئينده راتلونکي وخت کښي به بيا تاسو له الله موقع درکوي . که تاسو دا هغي نه فائده واغسته نو ټيک ده او که فائده مو وانغسته نو ( إِنْ أَحْسَنْتُمْ أَحْسَنْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا ) که تاسو دا هغي نه فائده واغسته نو خپله ګټه مو ده ، او که فائده مو تري وانغسته نو خپل تاوان مو دي . او بيا الله تعالي وائي په بني اسرائيل کښي (وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ ) بني اسرائيلو ته اوئيلي شو چي اسْكُنُوا الْأَرْضَ په زمکه کښي چي کوم ځائے ئي نو هلته اوسيږئ او خورئ او سکئ . فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ چي کله هغه وعده راشي دا قيامت دا عيسى عليه السلام دا راتلو . نو دا ټولي دنيا نه به مونږ توسو راغونډ کړو اسرائيل ته ،دا اوس چي راغونډيګي او دا اوس چي کوم دا اسرائيل قيام دي جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا

تاسو به دلته راجمع کيګئ او جمع دي . يوسف بنوري رحمه الله دا دي آيت په باره کښي وائي خپلو درسونو کښي په ۱۶۵۴ کښي وائي . دا نن سبا چي دا يهوديان اسرائيل ته راځي او راغونډيګي . داسي مخکښي چرته په زمانه کښي نه دي شوي او هم دا خبره سرفراز خان صفدر رحمه الله په خپل تفسير کښي ذخيرة الجنان کښي ليکي چي دادي آيت سه مطلب دي دا خپل استاذ نه مو تپوس اوکړو دا مولانا عبدالقدير رحمه الله نه چي سه مطلب دي دادي آيت جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا. وائي چي هغوي اوئيل چي بني اسرائيل به الله تعالي دلته راولي ، اسرائيل ته به ئي راغونډوي .

وائي چي مونږ ورته اوئيل چي دا بني اسرائيل خو ډير ذليله خلق دي په دوي باندي خو څوک باته روم او تېئ او تشنابونه هم نه پاکوي په هغه زمانه کښي په هندوستان کښي . هم داسي به کيګي هم دا بني اسرئيل به تاسو وخي او رسوا کوي به مو هم دا بني اسرائيل . وائي چي ما ورته وئيل چي دا به څنګه کيګي وي وي وئيل چي ميکي ته کله الله په قهر نو وزري ورله ورکړي . او دوي له هم الله تعالي وزري ورکوي او دوي به بيت المقدس ته راغونډ شي ، هم هغه شان اوشو او ټوله دنيا ئي په خپلو سترګو وينئ ، دا چا نه هم پټه نه ده ټول مخلوق په دي خبره پوهيګي او معلومه ده هر چا ته ، مبين ده ټولي دنيا ته ، عالمان او عام خلق ،جتې او جاهل ټول مخلوق پوښه دي . او ټول مکلوق په دي خبره پوهه دي چي بيت المقدس دا بني اسرائيلو په قبضه کښي دي او دا امريکي سفارتخانه هم دا تل ابيب نه بيت المقدس ته بدله شوه هلته ئي يوړله ، ښکاره خبره ده پټه نه ده مسلمانانو . او دري پيري الله تعالي په قرآن کښي دا ارشاد نازل کړي دي .
په سورة توبه کښي{يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَنْ يُتِمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ (٣٢)} [التوبة: ٣٢] او په سورة صف کښي { يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ (٨)} [الصف: ٨]

نو اول زل عمر رضي الله عنه او په دويم زل صلاح الدين ايوبي رحمه الله ډبولئ وؤ او انجام ئي ورسره کړي وؤ . او په دريم زل به انشاءَ الله بيا دوي ذليله کوي اوس الله ته پته ده چي دا چا په لاس به ئي ذليله کوي . الله تعالي دي پکښي مونږ شامل کړي او الله تعالي دي راضي شي مونږ نه .

او په دريمه پيره به ئي الله تعالي بيا ذليله کوي ، علامه ابن کثير رحمه الله په خپل کتاب البدايه والنهايه کښي ليکي او په هغي کښي ئي دي سره يو واقعه ذکر کړي ده ، وائي چي بيت المقدس په رومښي زل باندي فتح کيدو نو مسلمانانو پري حمله اوکړه هغه حمله کښي مسلمانانو ته سخت شکست اوشو ، جنگ اجنادين کښي . نو هغي زماني چي کوم دا يهوديانو عالم وؤ . ارطبون ئي نوم وؤ نو ارطبون يو خط اوليگو حضرت عبدالله ابن العمرو ابن العاص رضي الله عنه ته او حضرت عبدالله ابن العمرو ابن العاص رضي الله عنه هم پخپله دا تورات غټ عالم وؤ او په تورات پوهيدو او ورته هغه ارطبون هم اووئيل چي تاسو خو دا تورات عالم هم ئي چي دا بيت المقدس نه به دا خلق او دا يهوديان يو داسي کس اوباسي چي دا هغي په نوم کښي به دري حرفونه وي نو ستاسو نوم کښي خو دري حرفونه نه دي او دا ابوعبيده رضي الله عنه په نوم کښي هم دري حرفونه نشته ځئ جنگ مه کوئي او زان له هم هسي وخت مه ضائع کوئي .

حضرت عبدالله ابن العمرو ابن العاص رضي الله عنه پوهه شو او زر تر زره ئي حضرت عمر رضي الله عنه ته خط اوليکو چي مونږ ته خو جنگ کښي شکست ميلاؤ شو خو مونږ له اجازت راکړه چي مونږ په بيت المقدس دوباره حمله اوکړو . علامه ابن کثير رحمه الله فرمائي چي حضرت عمر رضي الله عنه ته پته وه چي حضرت عبدالله ابن العمرو ابن العاص رضي الله عنه يو خبره هم دا پيشنگوئي نه بغير نه کوي ، دا الله تعالي دا کلام او دا رسول الله دا پيشنگوئي او دا هغوي دا تعليماتو نه بغير نه کوي . نو بيا مسلمانانو حمله اوکړه او يهوديان په بيت المقدس کښي محصور شول او بيا ئي دا اووئيل چي چابياني او قبضه تاسو له نه درکوؤ ترڅو چي ستاسو امير نه وي راغلي حضرت عمر رضي الله عنه او دا حضرت عمر رضي الله عنه په نامه کښي دري ټکي وؤ . نو دغه شان هغه پيشنگوئي پوره شوه . او حضرت عبدالله ابن العمرو ابن العاص رضي الله عنه ته پته وه .

او دا بيت المقدس دوباره فتح دا صلاح الدين ايوبي رحمه الله استاذ ته چا اووئيل چي ۵۲۲ هـ کښي .نورالدين زنگي رحمه الله ته يو کس ابن برجان په خپل تفسير ابن برجان کښي دا ابو الحکم اندلسي نه نقل کړي دي . او هغوي ئي دا سورة روم دا آيتونو نه مستنبط کړي تطبيق کړي دي . او دا قرآن نه ئي نقل کړي دي . نو وائي چي نورالدين زنگي رحمه الله چي دا خبره اوريده نو هغه وئيل چي سهي ټهيک ده . نو دا هغي دپاره ئي تيارئي شروع کړي او لښکر تيارول ئي شروع کړل او اسلحه تياريدل ئي شروع کړو او ډيري تيارئي ئي شروع کړي ، او قيمتي اسونه او قسمه قسم تيارئي ئي اوکړي ، او ترکانړ ته ئي حکم اوکړو چي ممبر جوړ کړه چي الله ماله دا هغي پوري زندگي راکړي نو زه به په هغه ممبر باندي ودريگم او خطبه په پري کوم ، دومري غټ يقين ئي وؤ خو دا هغي نه مخکښي هغه وفات شو .

نو صلاح الدين ايوبي ته پته وه هغه دا هغي دپاره کوشش اوکړو ستړي ئي اوکړي نو الله تعالي دا هغه په لاس باندي بيت المقدس فتح کړو . نو دا فتح نه پس هغه اووئيل چي يو ممبر جوړ کړي نو هغوي ته خپل قوم اووئيل چي ممبر خو نورالدين زنگي رحمه الله جوړ کړي دي هغه تيار پروت دي بس هغه ممبر ئي راوړو په هغي باندي اودريدو او خطبه ئي پري اوکړه .

مطلب دا خبري دادي چي هر څه خو کوئي الله تعالي خو دا اسبابو ما تحت ئي کوي ، خو اسباب وسيله ورله بنده اوګرځي . نو ږومبۍ خبره داده چي دا بيت المقدس فتح او دا بيت المقدس اوس دوباره اختلال او دا کافرانو په قبضه کښي او دا يهوديانو پنجه کښي راتلل او دا يهوديانو په قبضه کښي کيدل . او دا امريکي سفارتحانه دا اتل ابيب نه بيت المقدس ته منتقل کيدل .

دي باره کښي دا واضح آيتونه دي [ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا ] { وَأَمْدَدْنَاكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا } دا يهوديانو راجمع کيدل بيت المقدس ته او دا هغوي اقتصادي طاقت او فوج سوا کيدل او مالونه ورسره سوا کيدل . دا دا قرآن مجيد هغه پيشنګوئي ده کمي چي اوس پوره کيګي .

نو په دي کښي مونګ ته الله تعالي دا تيارئ دپاره اشارئ هم راکئي چي زان تيار کړي مسلمانانو !

دا بخاري شريف روايت دي { لتقاتلون اليهود } چي تاسو به خامخا ضرور يهوديانو سره قتال کوئي . تر دي پوري چي يو يهودي دا وني يا دا کانړي شاته پټ وي نو هغه ونه او هغه کانړي به تاسو ته آواز کوي چي راشه زما شاته يهودي دي قتل ئي کړه . نو څنګه چي صلاح الدين ايوبي رحمه الله او نورالدين زنګي رحمه الله او حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن عمرو ابن العاص راضي الله عنه کوشش او ستړي ئي اوکړي نو الله تعالي کامياب او کامران کړل نو دغه شان پيشنګوئي زمونږ دپاره هم دي نو دا هغي دپاره تياري پکار دي چي تياري اوشي .

نو بله خبره داده په علاماتو زمانيو کښي چي حديث کښي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائي چي په بيت الله شريف کښي او دا هغي نه ګيرچاپيره به او بيت الله شريف باندي به يو کس حمله اوکړي .

او دادي دپاره به حمله اوکړي چي زه امام مهدي يم او دعوي به اوکړي دا رکن او دا مقام په مينځ کښي او زر به هغه کس او هغه انسان قتل شي . او دادي نه پس به بل کس راشي او دا هغه په لاس باندي به هم په بيت الله شريف کښي په رکن او مقام کښي بيعت اوشي نو دا دويم کس به صحيح امام مهدي عليه الرضوان وي نو په ۱۹۷۹ کښي په بيت الله شريف کښي يو کس راپاسيدو او حمله ئي اوکړه چي زه امام مهدي يم او عبدالله قحطاني ئي نوم وؤ . او پينځه لس ورځي ئي جنګ اوکړو په بيت الله شريف کښي دننه وؤ . او بيا هم عرب راپاسيدل او هغه ئي قتل کړو نو دا هغه پيشنګوئي وه چي پوره شوه . او بله خبره داده حديث شريف دي

چي تاسو به روم سره صلحه کوئي يعني عيسايانو سره به صلحه کوئي دا يو بل طاقت خلاف . نو بل حديث شريف کښي دي چي هغه بل طاقت خوز او کرمان دي . او دا خوز او کرمان نه مراد روس دي . او تاسو ته به فتح ملاويګي او بيا به هغوي تاسو سره غداري کوي او په تاسو باندي به حمله کوي او بيا ئي په مسلمانانو باندي حمله اوکړه . په افغانستان باندي او په عراق باندي او دا دي نه پس به بيا مهدي راځي .

او په علاماتِ زمانو کښي بله خبره داده . دا مسلم شريف روايت دي { يوشك أهل العراق أن لا يجبى إليهم قفيز ولا درهم، قلنا: من أين ذاك؟ قال: من قبل العجم، يمنعون ذاك، ثم قال: يوشك أهل الشأم أن لا يجبى إليهم دينار ولا مدي، قلنا: من أين ذاك؟ قال: من قبل الروم، ثم سكت هنية، ثم قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «يكون في آخر أمتي خليفة يحثي المال حثيا، لا يعده عددا» صحيح مسلم (٤/ ٢٢٣٤)

} په دي حديث شريف کښي دا نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه حضرت جابر رضي الله عنه نقل کوي چي عنقريب به په عراق باندي پابندي اولګي . دا عجم او دا عرب دا طرف او خوراک او درهم به پري بند شي . او بيا به په شام باندي پابندي اولګي او هر څه به پره بند شي او دا پابندي به دا روم دا طرفه وي پيسه ، خوراک سکاک به پري بند شي او دا پيسو او دا اقتصاد پابندي به وي .

دا ۱۹۹۱ نه واخله تر ۲۰۰۳ پوري په عراق پابندي وه دا خوراک سکاک ،پيسو او دا اقتصاد او بيا ئي پري حمله اوکړه . او دا ۲۰۲۲ نه تر اوسه پوري دا شام جنګ روان دي ، نو حديث کښي راځي چي دا شام جنګ شروع شي نو هغه به دا ماشومانو دا شرارت او دا لوبو نه شروع کيګي . { عن سعيد بن المسيب، قال: " تكون بالشام فتنة كلما سكنت من جانب طمت من جانب، فلا تتناهى حتى ينادي مناد من السماء: إن أميركم فلان "، الفتن لنعيم بن حماد (١/ ٢٣٧)

عن سعيد بن المسيب، قال: " تكون فتنة كأن أولها لعب الصبيان، كلما سكنت من جانب طمت من جانب، فلا تتناهى حتى ينادي مناد من السماء: ألا إن الأمير فلان "، وفتل ابن المسيب يديه حتى أنهما لتنفضان فقال: «ذلكم الأمير حقا، ثلاث مرات» الفتن لنعيم بن حماد (١/ ٣٣٧)}

چي شام باندي به جنګ شروع کيګي او دا هغي ابتدا به دا ماشومانو دا شرارت دا وجي نه کيګي . نو بيا به دا جنګ نه اودريګي . نو هر کله چي خلق وائي چي دا جنګ ختم شو ، نو هغه به بيا شروع شي ترڅو چي امام مهدي عليه الرضوان نه وي راغلي .

او بله خبره داده چي دا جنګ به جزيرة العرب داخل شي . دا عربو دا جنګ دا عراق دا جنګ او شام او دا يمن او دا کويت او دا بحرين دا جنګ دا به جزيرة العرب ته داخليګي .

حديث شريف کښي راځي چي «يقتتل عند كنزكم ثلاثة، كلهم ابن خليفة، ثم لا يصير إلى واحد منهم، ثم تطلع الرايات السود من قبل المشرق، فيقتلونكم قتلا لم يقتله قوم» حاشية السندي على سنن ابن ماجه (٢/ ٥١٨)

وائي چي دا عربو دا يو خاندان دري کسان به په بادشاهي او په دي خزانه به جنګ کوي . او نن سبا دا سعودي په بادشاهي دا جنګ شروع دي . دري دا ترۀ زامن دي ، يو محمد بن سلمان او دوه نور دا ترۀ زامن ئي دي . او دوي په خپلو کښي په جنګ دي په دي بادشاهي او په دي خزانه او خپلو کښي ئي جنګ شروع کړي دي ، او هغه جنګ اوس روان دي او ختميګي به دا امام مهدي عليه الرضوان په ظهور ،او دا جنګ به روان وي تر هغي چي مهدي عليه الرضوان راشي . نو دا خو علامات زمانيه باره کښي لګ شان بيان اوکړو.

نو اوس علامات مکانيه :.

چي امام مهدي عليه الرضوان به کوم ځائے کښي پيدا کيګي ، نو په حديث شريف کښي دي چي امام مهدي به مکه کښي پيدا کيګي او تعلق به ئي مکي او مديني سره وي ،او خراسان نه به جهاد له ځي . او بيا به دا خراسان نه راځي او جيل ته به ځي او خاندان به ئي هم ګرفتاريګي او جيل کښي به وخت تيروي او دا هغي وخت دا بادشاه دا طرف نه به ګرفتاريګي . او دا امام مهدي بنيادي تعلق به يمن سره وي دا يمن نه به ئي

دلته هجرت کړي وي . او دا نسب په اعتبار سره به دا نبي کریم صلي الله علیه وسلم دا خاندان نه به وي او دا فاطمه رضي الله عنها او دا حسن رضي الله عنه په اولاد کښي به راځي . خپل نوم به ئي محمد وي او مشهور به په بل نوم وي او دا پلارنوم به ئي عبدالله وي . او یو روایت کښي دي چي دا مور نوم به ئي آمنه وي . او دا دوي امام مهدي بیعت به دا رکن او مقام په مینځ کښي کیګي . او دا بیعت نه مخکښي به دا ټولي دنیا نه به خلق علماؤ سره متعلق وي او علماؤ سره به ئي بیعت کړي وي ، او دادي خلقو به دي علماؤ سره تعلق جوړ وي دا امام مهدي صاحب دا عنوان په وجه .

او چي وخت راشي نو دا خلق به دغه علما خانه کعبي ته را اوغواړي او دا امام مهدي په لاس به بیعت اوکړي دا رکن او مقام په مینځ کښي امام مهدي  علیه الرضوان سره . الله دي مونږ نه راضي شي او الله دي مونږ دا امام مهدي په لښکر کښي داخل کړي . آمین

نو دا بنیادي خبري دي امام مهدي علیه الرضوان سره متعلق او ډیري اهمي دي چي په دي باندي پخپله هم زان پوهه کړو او نورو مسلما نانو ته ئي هم اورسوؤ او دي طرف ته دعوت ورکول چي دا وخت اهم ضرورت دي .

او دا دین نورو کارونو سره په دي هم ځان پوهه کړو او نورو مسلمانانو ته دا خبري او دا دعوت رسول خپله ذمه داري اوګڼو ، چونکه په حدیثِ جبرئیل کښي الله تعالي نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته ټول دین بیان کړي دي . نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه تپوس اوشو چي ما الایمان نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورته وضاحت اوکړو چي «أن تؤمن بالله، وملائکته، وکتبه، ورسله، والیوم الآخر، وتؤمن بالقدر خیره وشره»،

او دا مونځ او دا اسلام تپوس اوشو نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورته اسلام بیان کړو چي مونځ کو ئے ،روژه نیسئ ،زکاة ورکو ئے او دا خلقو حقوق ادا کو ئے او دا بیت الله شریف حج کو ئے . او بیا دا احسان تپوس اوشو نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورته هغه هم بیان کړو وضاحت ئي ورته اوکړو «أن تعبد الله کأنك تراه، فإن لم تکن تراه فإنه یراك»،

او بیا تري  تپوس اوشو چي قیامت به کله راځي جبرائیل علیه السلام تپوس اوکړو . نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چي دا قیامت پته ماته نشته چي کله به راځي قال: «ما المسئول عنها بأعلم من السائل»

او بیا تپوس اوشو چي دا قیامت علامات څه دي نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل حدیث شریف دي قال: فأخبرني عن أمارتها، قال: «أن تلد الأمة ربتها، وأن ترى الحفاة العراة العالة رعاء الشاء یتطاولون في البنیان»،چي  مور به خپل آقا اوزئیګي چي مور سره به داسي رویه داسي سلوک کیګي چي څنګه نوکرے وینزے سره کیګي . او دا چیلو او دا ګډو بیزو سرونکي به غټ غټ عمارتونه جوړکړي او دا یو بل دا ضد او یو بل سره به پکښي مقابلئ کوي

حدثني أبي عمر بن الخطاب قال: بینما نحن عند رسول الله صلى الله علیه وسلم ذات یوم، إذ طلع علینا رجل شدید بیاض الثیاب، شدید سواد الشعر، لا یرى علیه أثر السفر، ولا یعرفه منا أحد، حتى جلس إلى

النبي صلى الله عليه وسلم، فأسند ركبتيه إلى ركبتيه، ووضع كفيه على فخذيه، وقال: يا محمد أخبرني عن الإسلام، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «الإسلام أن تشهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله صلى الله عليه وسلم، وتقيم الصلاة، وتؤتي الزكاة، وتصوم رمضان، وتحج البيت إن استطعت إليه سبيلا»، قال: صدقت، قال: فعجبنا له يسأله، ويصدقه، قال: فأخبرني عن الإيمان، قال: «أن تؤمن بالله، وملائكته، وكتبه، ورسله، واليوم الآخر، وتؤمن بالقدر خيره وشره»، قال: صدقت، قال: فأخبرني عن الإحسان، قال: «أن تعبد الله كأنك تراه، فإن لم تكن تراه فإنه يراك»، قال: فأخبرني عن الساعة، قال: «ما المسئول عنها بأعلم من السائل» قال: فأخبرني عن أمارتها، قال: «أن تلد الأمة ربتها، وأن ترى الحفاة العراة العالة رعاء الشاء يتطاولون في البنيان»، قال: ثم انطلق فلبثت مليا، ثم قال لي: «يا عمر أتدري من السائل؟» قلت: الله ورسوله أعلم، قال: «فإنه جبريل أتاكم يعلمكم دينكم» صحيح مسلم (١/ ٣٧)

. نو اوس اوگوري او ټول ئي ويئ دا عرب عمارتونه ټولي دنيا ته معلوم دي نو دا خبري پخپله زده كول او مخكښي رسول نورو مسلمانانو ته او هغوي تري خبرول دا وخت اهم ضرورت دي .

الله تعالي دي دا عمل كولو توفيق راكړي . آمين الله تعالي دي راضي شي آمين .